IslamHouse.com





Pashto
پښتو

# څلورم پیغام
## یو الله ته د رجوع وجوبي دلیلونه


لیکوال
عبدالله بن عبدالرحمن السعد

ژباړن
عبدالرحیم سلطان

کتونکی
غلام عبد الجبار









إن الحمد لله نحمده، ونستعينه، ونعوذ بالله من شرور أنفسنا وسيئات أعمالنا، من يهده الله فلا مضل له، ومن يضلل فلا هادي له، وأشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له، وأشهد أن محمدا عبده ورسوله صلى الله عليه وعلى آله وصحبه وسلم تسليمًا كثيرًا، أما بعد:

بیشکه ځیني خلک دخپلو حاجتونو د پوره کولو په خاطر او د مشکلاتو د لري کولو دپاره او دنجات او خلاصون دپاره، د مرضونو دشفا او علاج دپاره، او دبچو او رزق حاصلولو دپاره د الله پاک نه سوا نور مخلوق رابلي، بیشکه چې دا کار د اسلام مبین دین حرام ګرځولی دی، ځکه چې دا دجاهلیت عقیده او دالله پاک سره شرک دی، دلیل يې دادی: چې دا ټول هغه کارونه دي کوم چې یواځې د الله پاک په اختیار کې او په دې باندې د الله پاک نه سوا بل هیڅوک قدرت نلري، نو په داسې کارونو کې غیر الله ته فریاد او چغه کول حرام او شرک دی دې خبرې د اثبات دپاره په دې کتاب کې لس دلائل ذکر شوي دي.



١

# اول دليل

الله پاک په حاجتونو کې د غير الله رابلل منع کړي، لکه څنګه چې يې خپل نبي ته فرمايلي دي:

﴿ وَلَا تَدْعُ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَنفَعُكَ وَلَا يَضُرُّكَ فَإِن فَعَلْتَ فَإِنَّكَ إِذًا مِّنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ [يونس: ١٠٦]

**او له الله نه غير هغه شی مه رابله چې تا ته نه فايده دررسولی شي او نه تا ته ضرر دررسولی شي، نو که چېرې ته (دا) وکړې، نو بېشکه ته به په دغه وخت کې له ظالمانو څخه يې**

په يو بل مقام کې الله پاک فرمايلي دي:

﴿ وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّن يَدْعُوا۟ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَن لَّا يَسْتَجِيبُ لَهُۥٓ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ وَهُمْ عَن دُعَآئِهِمْ غَٰفِلُونَ ۝٥ وَإِذَا حُشِرَ ٱلنَّاسُ كَانُوا۟ لَهُمْ أَعْدَآءً وَكَانُوا۟ بِعِبَادَتِهِمْ كَٰفِرِينَ ﴾

[الأحقاف: ٥-٦]

**او له هغه کس نه زيات ګمراه څوك دی چې له الله نه غير هغه (معبودان) بلي چې د ده دعا (سوال) تر قيامته پورې نشي قبلولی، په داسې حال کې چې دغه (معبودان) به د دوی له بلنې نه غافله (بې خبره) وي.**

**او کله چې (ټول) خلق (د حساب لپاره په محشر کې) راجمع کړی شي دغه (معبودان) به د دوی دښمنان وګرځي او د دغو (عبادت**




**کوونکو) له عبادت نه به منکر شي.**

همدغه رنګ د الله پاک ارشاد دی:

﴿وَأَنَّ ٱلۡمَسَٰجِدَ لِلَّهِ فَلَا تَدۡعُواْ مَعَ ٱللَّهِ أَحَدٗا ١٨﴾ [الجن: ١٨]

**او دا چې یقینا جوماتونه خاص د الله لپاره دي، نو تاسو له الله سره بل هیڅوك مه بلئ په دي معنی باندي قران کریم کي ډیر زیات ایاتونه راغلي دي.**










# دویم دلیل

الله پاک خپلو بندګانو ته امر کړی دی چې یواځې په خپلو حاجتونو کې الله پاک راوبلئ، د الله پاک ارشاد دی:

﴿ وَقَالَ رَبُّكُمُ ٱدۡعُونِيٓ أَسۡتَجِبۡ لَكُمۡۚ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَسۡتَكۡبِرُونَ عَنۡ عِبَادَتِي سَيَدۡخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ ﴾ [غافر: ٦٠]

**او ستاسو رب فرمايي: تاسو ما وبلئ چې زه ستاسو دعا قبوله کړم. بیشکه هغه کسان چې زما له عبادت نه تکبر کوي، زر ده چې دوی به دوزخ ته ننوځي، په داسې حال کې چې خوار او ذلیله به وي**

په یو بل مقام کې الله پاک فرمايلي دي:

﴿ وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌۖ أُجِيبُ دَعۡوَةَ ٱلدَّاعِ إِذَا دَعَانِۖ فَلۡيَسۡتَجِيبُواْ لِي وَلۡيُؤۡمِنُواْ بِي لَعَلَّهُمۡ يَرۡشُدُونَ ﴾ [البقرة: ١٨٦]

**او کله چې زما په باره کې له تا نه زما بنده ګان تپوس وکړي، نو یقینا زه قریب یم، د دعا کوونکي دعا قبلوم کله چې له ما نه دعا غواړي، پس دوی دې زما حکم ومني، او په ما دې ایمان راوړي، د دې لپاره چې دوی سمه لار ومومي.**

همدغه رنګ د الله پاک ارشاد دی:

﴿ أَمَّن يُجِيبُ ٱلۡمُضۡطَرَّ إِذَا دَعَاهُ وَيَكۡشِفُ ٱلسُّوٓءَ وَيَجۡعَلُكُمۡ خُلَفَآءَ ٱلۡأَرۡضِۗ أَءِلَٰهٞ مَّعَ ٱللَّهِۚ قَلِيلٗا مَّا تَذَكَّرُونَ ﴾ [النمل:٦٢]






بلکې هغه ذات (غوره دی) چې د مجبور (او عاجز) سوال قبلوي، کله چې دغه (الله) وبلي او هغه تکلیف (او سختي) لرې کوي او تاسو د ځمکې خلیفه ګان جوړوي، ایا له الله سره بل معبود شته؟ تاسو ډېر لږ شانته نصیحت قبلوئ.

أیا د الله سره څوک شریک شته چې دا کارونه وکړي؟

نو خامخا جواب دادی: چې نه د الله پاک سره هیڅوک په دي کارونو کې شریک نشته بلکه هغه یواځې اوپه دي کارونو قادر ذات دی.

سورت اعراف کې الله فرمایلي دي:

﴿ قُلۡ أَمَرَ رَبِّي بِٱلۡقِسۡطِۖ وَأَقِيمُواْ وُجُوهَكُمۡ عِندَ كُلِّ مَسۡجِدٖ وَٱدۡعُوهُ مُخۡلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَۚ كَمَا بَدَأَكُمۡ تَعُودُونَ ﴾ [الأعراف: ٢٩]

ته ووایه: زما رب د انصاف حکم کړی دی او (دا چې) تاسو خپل مخونه د هر لمانځه په وخت کې نیغ (سیده) کړئ او تاسو هغه بلئ، چې د هغه لپاره د دین (عبادت) خالص کوونکي یئ، لکه څنګه چې یې تاسو اول ځل پیدا کړي یئ (هماغه شان به) تاسو راګرځئ.

همدغه رنګ د الله پاک ارشاد دی:

﴿ ٱدۡعُواْ رَبَّكُمۡ تَضَرُّعٗا وَخُفۡيَةًۚ إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلۡمُعۡتَدِينَ ٥٥ وَلَا تُفۡسِدُواْ فِي ٱلۡأَرۡضِ بَعۡدَ إِصۡلَٰحِهَا وَٱدۡعُوهُ خَوۡفٗا وَطَمَعًاۚ إِنَّ رَحۡمَتَ ٱللَّهِ قَرِيبٞ مِّنَ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ﴾ [الأعراف: ٥٥-٦٥]







**تاسو خپل رب وبلئ په عاجزۍ سره او په پټه سره، بېشکه هغه له حد نه تېرېدونکي نه خوښوي، او تاسو په ځمکه کې ورانی مه کوئ، د هغې له اصلاح نه پس، او تاسو هغه (الله) رابلئ په وېرې سره او په طمع سره، بېشکه د الله رحمت نېکي کوونکو ته ډېر نژدې دی.**

امام أحمد رحمه الله په مسند کې او امام ترمذي رحمه الله په خپل سنن ترمذي کې حديث د عبد الله بن عباس رضي الله عنهما نه نقل کړی چې: زه د نبي کريم صلی الله عليه وسلم سره په سورلۍ باندي سپور وم، چې ماته يي وفرمايل:

**«يَا غُلامُ! إنِّي مُعَلِّمُكَ كَلِمَاتٍ: احْفَظِ اللهَ يَحْفَظْكَ، احْفَظِ اللهَ تَجِدْهُ تُجَاهَكَ، وَإذَا سَأَلْتَ فَاسْأَلِ اللهَ، وَإذَا اسْتَعَنْتَ فَاسْتَعِنْ بِاللهِ، وَاعْلَمْ أَنَّ الْأُمَّةَ لَو اجْتَمَعُوا عَلَى أَنْ يَنْفَعُوكَ، لَمْ يَنْفَعُوكَ إلا بِشَيْءٍ قَدْ كَتَبَهُ اللهُ لَكَ، وَلَو اجْتَمَعُوا عَلَى أَنْ يَضُرُّوكَ، لَمْ يَضُرُّوكَ إلا بِشَيْءٍ قَدْ كَتَبَهُ اللهُ عَلَيْكَ، رُفِعَتِ الْأَقْلامُ، وَجَفَّتِ الصُّحُفُ».**

**ای ځوانه! زه تاته يو څو خبري کوم (ته ورباندي عمل وکړه) دالله پاک د دين لحاظ کوه الله پاک به ستا حفاظت وکړي، د الله پاک د حدودو لحاظ کوه الله پاک به مخامخ وموميې او کله چې څه غواړي يواځې د الله پاک نه يي غواړه، او کله چې مدد غواړي، يواځې په الله پاک سره مدد غواړه، پوهه شه که چيرته ستا دفائدې د پاره ټول امت راجمع شي، تاته هيڅ فائده نشي درکولی مګر هغه فائده کومه چې الله پاک ستا دپاره ليکلي وي، او که چيرته ټول امت ستا د ضرر دپاره راجمع شي، تاته هيڅ ضرر نشي درسولی مګر هغه ضرر کوم چې الله پاک ستا دپاره ليکلی وي، قلمونه وچت شوي دي او د ليکلو پاڼي بندي شوي دي.**




ددي حديث سند (جيد) دي او قيس بن حجاج صدوق راوي دی. همدغه شان په دي حديث کې حنش الصنعانی هم صدوق راوي دي.

او دا حديث په ډيرو سندونو سره نقل شوي دی چې په هغې سره ددي حديث قوت نور هم زياتيږي، امام ترمذي هم ورته حسن صحيح حديث ويلي دی.





# دریم دلیل

الله پاک په خپل عظیم الشان کتاب قران کریم کې ددې خبرې ښه واضحه بیان کړی دی چې هر څوک د غیر الله نه خپل حاجتونه غواړي او په خپلو مشکلاتو کې غیر الله ته فریاد کوې، بیشکه چې په دې کار سره دا کافر کیږي او په شرک کې واقع کیږي، دالله پاک ارشاد دی:

﴿ وَمَن يَدۡعُ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ لَا بُرۡهَٰنَ لَهُۥ بِهِۦ فَإِنَّمَا حِسَابُهُۥ عِندَ رَبِّهِۦٓۚ إِنَّهُۥ لَا يُفۡلِحُ ٱلۡكَٰفِرُونَ ﴾ [المؤمنون: ١١٧]

**او هغه څوك چې له الله سره بل داسې اله بلي چې له هغه سره په دې باندې هیڅ دلیل نشته، نو بېشکه همدا خبره ده چې د ده حساب د ده د رب په نیز دی، بېشکه شان دا دی چې کافران بری نه مومي.**

نو هرڅوک چې دخپلو مشکلاتو په مهال غیر الله ته فریادونه کوي او هغه رابلي دکافرانو دجملې نه شمیرل کیږي، لکه څنګه چې داخبره په مخکې ایت کریمه کې واضحه بیان شوه.

همدغه شان د الله پاک ارشاد دی:

﴿ وَمَنۡ أَضَلُّ مِمَّن يَدۡعُواْ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَن لَّا يَسۡتَجِيبُ لَهُۥٓ إِلَىٰ يَوۡمِ ٱلۡقِيَٰمَةِ وَهُمۡ عَن دُعَآئِهِمۡ غَٰفِلُونَ ۝٥ وَإِذَا حُشِرَ ٱلنَّاسُ كَانُواْ لَهُمۡ أَعۡدَآءٗ وَكَانُواْ بِعِبَادَتِهِمۡ كَٰفِرِينَ ﴾ [الأحقاف: ٥-٦]

**او له هغه کس نه زیات ګمراه څوك دی چې له الله نه غیر هغه**




**(معبودان) بلې چې د ده دعا (سوال) تر قیامته پورې نشي قبلولی، په داسې حال کې چې دغه (معبودان) به د دوی له بلنې نه غافله (بې خبره) وي.**

په دې ایت کریمه کې الله پاک وضاحت وکړ، چې څوک د غیر الله نه خپل حاجتونه غواړي او هغه مشکل کشاه ګڼي ددینه بل لوی ګمراه نشته.

د الله پاک ارشاد دی:

﴿قُلۡ إِنَّمَآ أَدۡعُواْ رَبِّي وَلَآ أُشۡرِكُ بِهِۦٓ أَحَدٗا﴾ [الجن:٢٠]

**ته (دوی ته) ووایه: یقینا زه خو یوائې خپل رب بولم او زه به له ده سره هیڅوك شریك نه کړم.**

یعني زه د الله پاک سره په بلنه کې بل هیڅ مخلوق نه شریکوم.





# څلورم دلیل

الله پاک داحقیقت واضحه بیان کړی دی، چې مخلوق که هرڅومره لوړه مرتبه ولري خو بیا هم دهیڅ څیز پوره اختیار او قدرت نلري ترڅو چې الله ورته قدرت او طاقت ورنکړي، څکه چې ټول مخلوق الله پاک ته محتاجه دی، اګر که پیغمبران وي څکه چې دوي هم د نور عامو انسانانو په څیر په بشریت کې یو شان دي، څکه چې په دوي باندي هغه احوال وغیره راځي کوم چې په عامو انسانانو باندي راځي، مثلا دوي د عامو انسانانو په څیر خوراک څښاک کوي، مرض، مرګ وغیرهورباندي راځي، دالله پاک ارشاد دی:

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ أَنتُمُ ٱلۡفُقَرَآءُ إِلَى ٱللَّهِۖ وَٱللَّهُ هُوَ ٱلۡغَنِيُّ ٱلۡحَمِيدُ﴾ [فاطر: ١٥]

**ای خلقو! هم تاسو الله ته محتاجان یئ، او الله، هم دی ښه بې پروا، ښه ستایل شوی دی.**

الله پاک د موسی علیه السلام باره کې فرمایلي دي:

﴿فَقَالَ رَبِّ إِنِّي لِمَآ أَنزَلۡتَ إِلَيَّ مِنۡ خَيۡرٖ فَقِيرٞ﴾ [القصص: ٢٤]

**ای زما ربه! بېشکه زه هر هغه څیز ته چې ته یې ما ته نازلوې له خیره څنې؛ محتاج یم.**

او دابراهیم علیه السلام باره کې الله پاک داسي فرمایي:

﴿وَإِذَا مَرِضۡتُ فَهُوَ يَشۡفِينِ﴾ [الشعراء: ٨٠]

**او کله چې زه ناروغه شم، نو هغه ما ته شفا راکوي.**

همدغه رنګ الله پاک د عیسی علیه السلام او د هغه مور مریم بي بي باره کې فرمایلي دي:چې دی دواړه انسانان دي او خوراک کوي،

﴿مَّا ٱلۡمَسِيحُ ٱبۡنُ مَرۡيَمَ إِلَّا رَسُولٞ قَدۡ خَلَتۡ مِن قَبۡلِهِ ٱلرُّسُلُ وَأُمُّهُۥ صِدِّيقَةٞۖ كَانَا يَأۡكُلَانِ ٱلطَّعَامَۗ ٱنظُرۡ كَيۡفَ نُبَيِّنُ لَهُمُ ٱلۡأٓيَٰتِ ثُمَّ ٱنظُرۡ أَنَّىٰ يُؤۡفَكُونَ﴾ [المائدة: ٧٥]

**نه دی د مریمې زوی مسیح مګر یو رسول دی، یقینا له ده نه مخکې رسولان تېر شوي دي او د ده مور صِدیقه (ډېره زیاته رښتینې) وه، دې دواړو به طعام خوړلو، ته وګوره مونږ څنګه دوی ته ایتونه بیانوو، بیا ته وګوره دوی کوم طرف اړولی شي.**

همدغه رنګ الله فرمایلي دي:

﴿قُلۡ فَمَن يَمۡلِكُ مِنَ ٱللَّهِ شَيۡـًٔا إِنۡ أَرَادَ أَن يُهۡلِكَ ٱلۡمَسِيحَ ٱبۡنَ مَرۡيَمَ وَأُمَّهُۥ وَمَن فِي ٱلۡأَرۡضِ جَمِيعٗا﴾ [المائدة: ١٧]

**ته (ورته) ووایه: د الله په وړاندې به څوك د څه شي اختیار ولري که هغه اراده وکړي چې د مریمې زوی مسیح او د هغه مور او څوك چې په ځمکه کې دي؛ هغه ټول هلاك کړي.**

دالله پاک ارشاد دی:

﴿وَمَآ أَرۡسَلۡنَا قَبۡلَكَ مِنَ ٱلۡمُرۡسَلِينَ إِلَّآ إِنَّهُمۡ لَيَأۡكُلُونَ ٱلطَّعَامَ وَيَمۡشُونَ فِي ٱلۡأَسۡوَاقِ﴾ [الفرقان: ٢٠]

**او له تا نه مخکې مونږ رسولان نه دي لیږلي مګر چې یقینا هغوی به خامخا طعام خواره، او په بازارونو کې ګرځېدل.**

الله پاک جناب محمد صلی الله علیه وسلم ته فرمایلي دي:

﴿إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُم مَّيِّتُونَ﴾ [الزمر: ٣٠]

**بېشکه ته هم مړ کېدونکی يې او بېشکه دوی (هم) مړ کېدونکي دي.**

﴿وَلَا تَقُولَنَّ لِشَاْىۡءٍ إِنِّي فَاعِلٌ ذَٰلِكَ غَدًا ٢٣ إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُۚ وَٱذۡكُر رَّبَّكَ إِذَا نَسِيتَ وَقُلۡ عَسَىٰٓ أَن يَهۡدِيَنِ رَبِّي لِأَقۡرَبَ مِنۡ هَٰذَا رَشَدًا﴾ [الكهف: ٢٣]

**او ته د هېڅ شي په باره کې له سره داسې مه وایه چې بېشکه زه سبا ته د دغه کار کوونکی یم، مګر (جوخت ورسره وایه) که الله يې وغواړي او خپل رب یادوه کله چې دې هېر شي، او ته ووایه امېد دی چې ما ته به زما رب لار ښوونه وکړي د نیکۍ په لحاظ دې ته د قریب ترې لارې.**

﴿قُلۡ إِنَّمَآ أَنَا۠ بَشَرٞ مِّثۡلُكُمۡ يُوحَىٰٓ إِلَيَّ أَنَّمَآ إِلَٰهُكُمۡ إِلَٰهٞ وَٰحِدٞۖ فَمَن كَانَ يَرۡجُواْ لِقَآءَ رَبِّهِۦ فَلۡيَعۡمَلۡ عَمَلٗا صَٰلِحٗا وَلَا يُشۡرِكۡ بِعِبَادَةِ رَبِّهِۦٓ أَحَدَۢا﴾ [الكهف: ١١٠]

**ته (دوی ته) ووایه: بېشکه همدا خبره ده چې زه یواځې ستاسو په شان بشر یم، ما ته وحي کولی شي چې بېشکه ستاسو معبود یواځې یو معبود دی، نو هغه څوك چې د خپل رب د ملاقات امېد لري، نو هغه دې نېك عمل وکړي او د خپل رب په عبادت کې دې هیڅوك نه شریکوي.**

بلکه الله پاک په قران کريم فرمايلي دي چې ځيني پيغمبران د خپلو قومونو دلاسه په شهادت رسيدلي دي، د الله پاک ارشاد دی:

﴿أَفَكُلَّمَا جَآءَكُمۡ رَسُولُۢ بِمَا لَا تَهۡوَىٰٓ أَنفُسُكُمُ ٱسۡتَكۡبَرۡتُمۡ فَفَرِيقٗا كَذَّبۡتُمۡ وَفَرِيقٗا تَقۡتُلُونَ﴾ [البقرة: ۸۷]

**ايا نو کله چې به هم کوم رسول تاسو ته هغه (احکام) راوړل چې ستاسو نفسونو به نه خوښوَل، تاسو به ډېره لويي وکړه؛ نو (د پيغمبرانو) يوه ډله مو دروغژنه وګڼله او بله ډله به تاسو وژله.**

پس يواځينی هغه حقيقت چې مونږ ورته رسيږو هغه دادی: چې دمشکلاتو په مهال بايد يواځې د الله پاک دذات نه مدد وغوښتل شي، او يواځې هغه ته بايد فرياد وشي، ځکه چې هغه رب دی او په هرڅيز باندې کامل قدرت لري، دالله پاک ارشاد دی:

﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ تَدۡعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ عِبَادٌ أَمۡثَالُكُمۡۖ فَٱدۡعُوهُمۡ فَلۡيَسۡتَجِيبُواْ لَكُمۡ إِن كُنتُمۡ صَٰدِقِينَ ﴾ [الأعراف: ۱۹٤]

همدغه رنګ الله فرمايلي دي:

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ضُرِبَ مَثَلٞ فَٱسۡتَمِعُواْ لَهُۥٓۚ إِنَّ ٱلَّذِينَ تَدۡعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ لَن يَخۡلُقُواْ ذُبَابٗا وَلَوِ ٱجۡتَمَعُواْ لَهُۥۖ وَإِن يَسۡلُبۡهُمُ ٱلذُّبَابُ شَيۡـٔٗا لَّا يَسۡتَنقِذُوهُ مِنۡهُۚ ضَعُفَ ٱلطَّالِبُ وَٱلۡمَطۡلُوبُ﴾ [الحج: ۷۳]

**ای خلقو! يو مثال بيانولی شي، نو تاسو ده ته ښه غوږ کيږدئ، بيشکه هغه شيان چې تاسو يې له الله نه غير بلئ دوی له سره يو مچ هم نشي پيدا کولی اګر که دوی ده ته ټول راجمع شي او که مچ له دوی نه يو**

**شی وتښتوي، دوی له هغه نه دغه (شی) نشي راخلاصولی، کمزوری دی دا طالب (د غیرالله عبادت کوونکی) او دغه مطلوب (باطل معبود).**

د الله پاک ارشاد دی:

﴿وَٱلَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا ٱصۡرِفۡ عَنَّا عَذَابَ جَهَنَّمَۖ إِنَّ عَذَابَهَا كَانَ غَرَامًا﴾ [الفرقان: ٦٥]

**او هغه کسان دي چې وايي: ای زمونږ ربه! ته زمونږ نه د جهنم عذاب وګرځوه، بېشکه د هغه عذاب همېشه لازمېدونکی دی.**








# پنځم دلیل

الله پاک خبر ورکړی دی چې بیشکه ټول رسولان، او پیغمبران، او نیکان بندګان بلکه ملائکې هم دوي ټول د مشکلاتو په مهال یوازې الله پاک ته فریاد کوي، او د دوي تابعداري واجب ده نو باید هم دهر قسم مشکل په وخت یوازې الله پاک ته فریاد وکړو او هغه مشکل کشاه وګڼو!

الله پاک د یونس علیه السلام باره کې فرمائي کله چې هغه د ماهي په خیټه کې و او په ډیرو تیارو کې راګیر شو نو خپل الله ته یي فریاد وکړ:

﴿ وَذَا ٱلنُّونِ إِذ ذَّهَبَ مُغَٰضِبًا فَظَنَّ أَن لَّن نَّقۡدِرَ عَلَيۡهِ فَنَادَىٰ فِي ٱلظُّلُمَٰتِ أَن لَّآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنتَ سُبۡحَٰنَكَ إِنِّي كُنتُ مِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ [الأنبياء: ٨٧]

**او (یاد کړه) د کب والا، کله چې هغه د غصې په حال کې لاړ، نو هغه دا خیال وکړ چې مونږ به په ده باندې له سره تنګي ونه کړو، بیا یې په تیارو کې اواز وکړ (داسې) چې نشته هیڅ لایق د عبادت مګر ته یې، ته پاك یې، بېشکه هم زه له ظالمانو څخه یم.**

د زکریا علیه السلام باره کې فرمایلي دي:

﴿ وَزَكَرِيَّآ إِذۡ نَادَىٰ رَبَّهُۥ رَبِّ لَا تَذَرۡنِي فَرۡدًا وَأَنتَ خَيۡرُ ٱلۡوَٰرِثِينَ ٨٩ فَٱسۡتَجَبۡنَا لَهُۥ وَوَهَبۡنَا لَهُۥ يَحۡيَىٰ وَأَصۡلَحۡنَا لَهُۥ زَوۡجَهُۥٓۚ إِنَّهُمۡ

كَانُواْ يُسَٰرِعُونَ فِي ٱلۡخَيۡرَٰتِ وَيَدۡعُونَنَا رَغَبٗا وَرَهَبٗاۖ وَكَانُواْ لَنَا خَٰشِعِينَ﴾ [الأنبياء: ٨٩-٩٠]

او (یاد کړه) زکریا کله چې هغه خپل رب ته اواز وکړ: ای زما ربه! ما یواځې (بې اولاده) مه پرېږده او ته ترټولو غوره وارث یې، نو مونږ د هغه دعا قبوله کړه او مونږ هغه ته یحیٰ عطا کر او د هغه لپاره مو د هغه ښځه روغه کړه، بېشکه دوی (نبیان داسې) وو چې په نېکیو کې به یې تلوار کاوه، په دې حال کې چې رغبت کوونکي او وېرېدونکي وو او دوی خاص زمونږ لپاره تواضع کوونکي وو.

دأیوب علیه السلام باره کې فرمايي کله چې يي الله ته فریاد وکړ:

﴿وَأَيُّوبَ إِذۡ نَادَىٰ رَبَّهُۥٓ أَنِّي مَسَّنِيَ ٱلضُّرُّ وَأَنتَ أَرۡحَمُ ٱلرَّٰحِمِينَ ٨٣ فَٱسۡتَجَبۡنَا لَهُۥ فَكَشَفۡنَا مَا بِهِۦ مِن ضُرّٖۖ وَءَاتَيۡنَٰهُ أَهۡلَهُۥ وَمِثۡلَهُم مَّعَهُمۡ رَحۡمَةٗ مِّنۡ عِندِنَا وَذِكۡرَىٰ لِلۡعَٰبِدِينَ﴾ [الأنبياء: ٨٣-٨٤]

او (یاد کړه) ایوب کله چې هغه خپل رب ته اواز وکړ چې یقیناً زه (چې یم) ما ته تکلیف رارسېدلی دی او ته تر ټولو زیات رحم کوونکی یې، نو مونږ د هغه دعا قبوله کړه، نو مونږ هغه تکلیف لرې کړ چې هغه ته و او مونږ هغه ته د هغه کورنۍ او له هغوی سره د هغوی په مثل عطا کړل له خپل طرف نه د رحمت په وجه او د عبادت کوونکو لپاره د نصیحت په خاطر.

د ملائکو باره کې الله پاک فرمائي:

﴿ٱلَّذِينَ يَحۡمِلُونَ ٱلۡعَرۡشَ وَمَنۡ حَوۡلَهُۥ يُسَبِّحُونَ بِحَمۡدِ رَبِّهِمۡ وَيُؤۡمِنُونَ بِهِۦ وَيَسۡتَغۡفِرُونَ

لِلَّذِينَ ءَامَنُواْ رَبَّنَا وَسِعۡتَ كُلَّ شَيۡءٖ رَّحۡمَةٗ وَعِلۡمٗا فَٱغۡفِرۡ لِلَّذِينَ تَابُواْ وَٱتَّبَعُواْ سَبِيلَكَ وَقِهِمۡ عَذَابَ ٱلۡجَحِيمِ ٧ رَبَّنَا وَأَدۡخِلۡهُمۡ جَنَّٰتِ عَدۡنٍ ٱلَّتِي وَعَدتَّهُمۡ وَمَن صَلَحَ مِنۡ ءَابَآئِهِمۡ وَأَزۡوَٰجِهِمۡ وَذُرِّيَّٰتِهِمۡۚ إِنَّكَ أَنتَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡحَكِيمُ ﴾ [غافر: ٧-٨]

(له ملايكو څخه) هغه كسان چې عرش اوچتوي او هغه (ملايك) چې د دغه (عرش) ګېر چاپېره دي، دوی د خپل رب د ستاينې سره تسبيح وايي او په ده ايمان لري او د هغو كسانو لپاره مغفرت غواړي چې ايمان يې راوړی دی (او وايي:) ای زمونږه ربه! ته د رحمت په لحاظ سره هر شي ته رسېدلی يې، نو ته هغو كسانو ته بخښنه وكړې چې توبه يې ايستلې ده او ستا د لارې پيروي يې كړې ده او ته دوی د دوزخ له عذاب نه وساته، ای زمونږه ربه! او ته دوی د تل استوګنې هغو جنتونو ته ننباسه چې تا يې له دوی سره وعده كړې ده، او هغه څوك چې صلاحيت ولري د دوی له پلرونو او د دوی له ښځو او د دوی له اولادونو څخه (هغه هم ننباسه)، بېشكه ته، هم ته ښه غالب، ډېر حكمت والا يې.

په صحيح بخاري كې د عبد الله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دی، چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم دبدر په ورځ دا دعا ډېره كوله:

«اللَّهُمَّ إِنِّي أَنْشُدُكَ عَهْدَكَ وَوَعْدَكَ، اللَّهُمَّ إِنْ شِئْتَ لَمْ تُعْبَدْ»

ای پروردګاره زه ستانه دهغه وعدی سؤال كومه چې دي ماسره كړې وه، ای پروردګاره كه ته وغواړې او دا زما ملګري په شهادت ورسيږي، نو ستا عبادت او بندګي به بيا نه كيږي.

نبي كريم صلى الله عليه وسلم دا دعا كوله چې ابو بكر صديق رضي

الله عنه ورغي او دهغه لاس يي ونيولو، او نبي كريم صلى الله عليه وسلم ته يي وويل بس دى يا رسول الله نبي كريم صلى الله عليه وسلم راووت او دا ايت يي لوستلو:

﴿ سَيُهۡزَمُ ٱلۡجَمۡعُ وَيُوَلُّونَ ٱلدُّبُرَ ﴾ [القمر: ٤٥]

**دغه جمع (ډله) به يقينا يقينا ماته كړى شي او دوى به شاګاني وګرځوي.**

حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح باري كي او امام طبراني په حسن سند سره د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه روايت نقل كوي:

عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وائي: چې مونږ هيڅ يو كس نه دي ليدلى چي خپل ورك شوي څيز دومره په زارۍ سره غواړي لكه څنګه چي نبي كريم صلى الله عليه وسلم دبدر په غزا كې دالله نه مرسته او مدد غوښتلو:

**«اللَّهُمَّ إِنِّي أَنْشُدُكَ مَا وَعَدَّتِنِي».**

**پروردګاره زه ستانه په زارئ سره هغه وعده دمرستي غواړم كومه چي دي ماسره كړي ده.**

همدا حديث امام نسائي رحمه الله د عبد الله بن مسعود په روايت سره راوړي فرمائي: كله چي مونږ د بدر په ورځ د مشركانو سره مخامخ شو، نوما هيڅ يو كس نه دي ليدلى چې خپل ورك شوي څيز دومره په زارئ سره غواړي لكه څنګه چي نبي كريم صلى الله عليه وسلم دبدر په غزا كې دالله نه مرسته او مدد غوښتلو، او داسي يې فرمايل:






**«اللَّهُمَّ إِنِّي أَنْشُدُكَ وَعْدَكَ وَعَهْدَكَ، اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ مَا وَعَدْتَنِي، اللَّهُمَّ إِنْ تُهْلِكْ هَذِهِ الْعِصَابَةَ لا تُعْبَدْ فِي الأَرْضِ».**

**پروردګاره زه ستانه په زاريځ سره هغه وعده دمرستي غواړم کومه چي دي ماسره کړي ده.**

پروردګاره که د مسلمانانو داټولګی دلته په شهادت ورسيږي، نو په مخ دزمکه به ستا د عبادت او بندګي کولو واله نه وي!

بيا نبي کريم صلى الله عليه وسلم مونږ ته وکتل او داسي يي وفرمايل:

**«هَذِهِ مَصَارِعُ الْقَوْمِ الْعَشِيَّةَ».**

**نن مازديګر به مشرکان په دي ځايونو کي هلاکيږي.**

او داحديث امام طبراني هم دعبد الله بن مسعود رضي الله عنه په روايت سره نقل کړی دی، فرمائي: چي مونږ هيڅ يو کس نه دي ليدلی چي خپل ورک شوي څيز دومره په زاريځ سره غواړي لکه څنګه چي نبي کريم صلى الله عليه وسلم دبدر په غزا کي دالله نه مرسته او مدد غوښتلو.

**«اللَّهُمَّ إِنِّي أَنْشُدُكَ مَا وَعَدْتَنِي، اللَّهُمَّ إِنَّكَ إِنْ تُهْلِكَ هَذِهِ الْعِصَابَةَ لا تُعْبَدُ».**

**پروردګاره زه ستانه په زاريځ سره هغه وعده دمرستي غواړم کومه چي دي ماسره کړي ده.**

پروردګاره که د مسلمانانو داټولګی دلته په شهادت ورسيږي، نو په مخ دزمکه به ستا د عبادت او بندګي کولو واله نه وي!

بیا نبي کریم صلی الله علیه وسلم مونږ ته وکتل مخ يې د سپوږمۍ په شان ځلیده او داسې يې وفرمایل:

**«كَأَنَّمَا أَنْظُرُ إِلَى مَصَارِعِ الْقَوْمِ عَشِيَّةً».**

**کویا چې زه د مشرکانو د هلاکیدلو ځایو نو ته ګورم چې نن ماز دیګر به هلاکیږي.**









# شپږم دلیل

بیشکه داټول کائنات او هرهغه څه چې په دې کائناتو کې دي، ټول دالله پاک مخلوق او د هغه په ملکیت کې دي، او یواځې د هغه واک په کې چلیږي، نو واجب داده چې یواځې الله پاک ته فریاد وکړی شي، ځکه چې ددې ټولو کائناتو مالک، خالق، او واکدار هغه دی، د الله پاک ارشاد دی:

﴿ٱلرَّحۡمَٰنُ عَلَى ٱلۡعَرۡشِ ٱسۡتَوَىٰ ۝٥ لَهُۥ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِ وَمَا بَيۡنَهُمَا وَمَا تَحۡتَ ٱلثَّرَىٰ﴾ [طه: ٥-٦]

**رحمن په عرش باندې برقراره شو، خاص د ده لپاره دي هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هغه څه چې په ځمکه کې دي او هغه څه چې د دواړو په مینځ کې دي او هغه څه چې د لوندې ځمکې نه لاندې دي.**

یو بل مقام کې الله پاک فرمایلي دي:

﴿يَعۡلَمُ مَا يَلِجُ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَمَا يَخۡرُجُ مِنۡهَا وَمَا يَنزِلُ مِنَ ٱلسَّمَآءِ وَمَا يَعۡرُجُ فِيهَاۖ وَهُوَ مَعَكُمۡ أَيۡنَ مَا كُنتُمۡۚ وَٱللَّهُ بِمَا تَعۡمَلُونَ بَصِيرٞ﴾ [الحدید: ٤]

**دی عالم دی په هر شي چې په ځمکه کې ننوځي او په هر هغه شي چې له دې نه راوځي او په هر هغه شي چې له اسمانه راکوزیږي او په هر هغه شي چې په ده کې پورته خیژي او دغه (الله د خپل شان لایق) له تاسو سره دی، هر چیرې چې تاسو یئ او الله هغو کارونو لره چې تاسو یې کوئ، ښه لیدونکی دی.**






همدغه شان د الله پاک ارشاد دی:

﴿إِن تَدۡعُوهُمۡ لَا يَسۡمَعُواْ دُعَآءَكُمۡ وَلَوۡ سَمِعُواْ مَا ٱسۡتَجَابُواْ لَكُمۡۖ وَيَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ يَكۡفُرُونَ بِشِرۡكِكُمۡۚ وَلَا يُنَبِّئُكَ مِثۡلُ خَبِيرٖ﴾ [فاطر: ١٤]

**که تاسو دوی وبولئ، دوی ستاسو بلنه نه اوري او که چېرې وايې وري، نو دوی ستاسو بلنه قبلولی نه شي او د قیامت په ورځ به دوی ستاسو په شریك جوړولو منکر شي او تا ته (بل څوك) خبر نشي درکولی د ښه خبرداره (الله) په شان.**

د الله پاک دا وینا:



﴿ٱللَّهُ ٱلصَّمَدُ﴾ [الإخلاص: ٤]

**هم دا الله بې نیاز (بې حاجته) دی.**

صمد: هغه ذات وايي چې دټولو مخلوقاتو حاجتونه پوره کوي، او ټول مخلوقات هغه ته د حاجتونو پوره کولو دپاره رجوع کوي.



# اووم دلیل

بیشکه الله پاک د پیغمبرانو دعاګاني هم په بعضي وخت کې نه دي قبولي کړي او دهغوي هغه حاجتونه نه دي پوره شوي، لکه څنګه چې الله پاک دمحمد صلی الله علیه وسلم باره کې فرمایلي دي کله چې هغه د خپل تره أبو طالب د پاره هدایت غوښتلو :

﴿ إِنَّكَ لَا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَن يَشَاءُ ۚ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ ﴾ [القصص: ٥٦]

**بیشکه ته هدایت نشې کولی هغه چا ته چې ته یې خوښوې، او لیکن الله هدایت ورکوي چا ته چې وغواړي او هغه ښه عالم دی په هدایت موندونکو باندې.**

دالله پاک دا وینا:

﴿اسْتَغْفِرْ لَهُمْ أَوْ لَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ إِن تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِينَ مَرَّةً فَلَن يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ ﴾ [التوبة: ٨٠]

**ته د دوی لپاره استغفار وغواړه، یا د دوی لپاره استغفار مه غواړه که ته د دوی لپاره اویا ځله هم استغفار وغواړې، نو الله به له سره دوی ته بخښنه ونه کړي، دا ځکه چې یقیناً دوی په الله او د هغه په رسول کافران شوي دي او الله فاسق (له حد نه وتونکي) قوم ته هدایت نه کوي.**

د الله پاک دا وینا:






﴿ مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَن يَسْتَغْفِرُواْ لِلْمُشْرِكِينَ وَلَوْ كَانُوٓاْ أُوْلِي قُرْبَىٰ مِنۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُمْ أَصْحَٰبُ ٱلْجَحِيمِ ﴾ [التوبة: ۱۱۳]

**د نبي او هغو کسانو لپاره چې ایمان یې راوړی دی؛ روا نه دي چې د مشرکانو لپاره مغفرت وغواړي اګر که دغه (مشرکان) د خپلولۍ والا وي، وروسته له دې نه چې دوی ته دا ښه ښکاره شوه چې یقینًا دوی د دوزخ والا دي.**

د الله پاک دا وینا د ابراهیم علیه السلام باره کې:

﴿ وَمَا كَانَ ٱسْتِغْفَارُ إِبْرَٰهِيمَ لِأَبِيهِ إِلَّا عَن مَّوْعِدَةٍ وَعَدَهَآ إِيَّاهُ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُۥٓ أَنَّهُۥ عَدُوٌّ لِّلَّهِ تَبَرَّأَ مِنْهُ إِنَّ إِبْرَٰهِيمَ لَأَوَّٰهٌ حَلِيمٌ ﴾ [التوبة: ۱۱٤]

**او د خپل پلار لپاره د ابراهیم مغفرت غوښتل نه و مګر د یوې وعدې له وجې نه چې د هغې وعده یې له هغه (خپل پلار) سره کړې وه، نو کله چې هغه ته ښه څرګنده شوه چې یقینا هغه د الله دښمن دی (، نو) له هغه نه بیزاره شو، بېشکه ابراهیم خامخا ډېر اِه کوونکی (په زړه نرم) ډېر تحمل والا و.**

اودا خبره واضحه او معلومه ده چې الله پاک د ابراهیم علیه السلام دا دعا نده قبوله کړې.

د الله پاک دا وینا د نوح علیه السلام باره کې:

﴿ وَنَادَىٰ نُوحٌ رَّبَّهُۥ فَقَالَ رَبِّ إِنَّ ٱبْنِي مِنْ أَهْلِي وَإِنَّ وَعْدَكَ ٱلْحَقُّ وَأَنتَ أَحْكَمُ ٱلْحَٰكِمِينَ ﴿٤٥﴾ قَالَ يَٰنُوحُ إِنَّهُۥ لَيْسَ مِنْ أَهْلِكَ إِنَّهُۥ عَمَلٌ غَيْرُ صَٰلِحٍ فَلَا تَسْـَٔلْنِ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِۦ عِلْمٌ إِنِّيٓ أَعِظُكَ أَن تَكُونَ مِنَ ٱلْجَٰهِلِينَ ﴿٤٦﴾ قَالَ رَبِّ إِنِّيٓ أَعُوذُ

بِكَ أَنۡ أَسۡـَٔلَكَ مَا لَيۡسَ لِي بِهِۦ عِلۡمٞۖ وَإِلَّا تَغۡفِرۡ لِي وَتَرۡحَمۡنِيٓ أَكُن مِّنَ ٱلۡخَٰسِرِينَ﴾ [هود: ٤٥-٤٧]

**او نوح خپل رب ته اواز (سوال) وکړ، نو ويې ويل: ای زما ربه! بېشکه زما زوی زما له اهله دی او بېشکه هم ستا وعده حقه ده او ته ترټولو ښه فیصله کوونکی يې.**

**ويې ويل: ای نوحه! بېشکه هغه (ستا زوی) ستا له (مومن) اهله څخې نه دی، بېشکه هغه (خاوند د) ناکاره عمل دی، نو له ما نه د هغه څيز سوال مه کوه چې تا ته د هغه په باره کې څه علم نه وي، بېشکه زه تا ته له دې نه نصیحت کوم چې ته شې له جاهلانو نه.**

**هغه وويل: ای زما ربه! بېشکه زه په تا پورې پناه نیسم له دې نه چې له تا نه د هغه څه سوال وکړم چې ما ته د هغه په باره کې څه علم نه وي او که ته ما ته بخښنه ونه کړې او په ما رحم ونه کړې (نو) شم به زه له تاوانیانو نه.**

دوې څنګه د الله پاک نه سوا بل چاته فریادونه کوې.

همدغه شان تاسو د أحد په غزا باندې نظر واچوئ، مسلمانان د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په قیادت (مشري) کې د مشرکینو خلاف جنګ وکړ، هر قسم اسباب يې استعمال کړ، او غوښتل يې چې غلبه حاصله کړې، خو ددې کوشش سر بېره بیا هم غلبه حاصله نشوه، او الله پاک ددې غزا باره کې په سورت آل عمران کې ډېر ایتونه نازل کړل چې په هغې کې د مسلمانانو دپاره تربیت او ډېرې لارښونې وې، او د أحد په دې غزاکې د هزیمت (ناکامي) اسباب يې هم بیان کړل.





همدغه رنګ علي بن أبی طالب غوښتل چي د صفین په جنګ کې په خپلو دښمنانو باندي غلبه ترلاسه کړي ، ددي دپاره یي اسباب هم استعمال کړل خو غلبه یي حاصله نه کړه.

تاسو د حسین رضي الله عنه حال ته وګورئ چي، هغه دخپل ځان او بچو په دفاع کې وجنګیده او په شهادت ورسیده خو د خپل ځان او بچو نه په دفاع کولو ونه توانیده تردي چي د خپلو اهل بیتو سره یوځاي په شهادت ورسید.

نو ځکه خو مونږ په هغه خلکو چي علي او حسین رضي الله عنهم ته فریادونه کوې غږ کوو چي تاسو ځنګه دوي دالله پاک سره شریکوي او حال دادی چي دوي و نتوانیدل چي دخپل ځانونو او بچونه دفاع وکړې، او نه یي د الله پاک فیصله بدله کړه، داخبره د انساني عقل سره سمه او معلومه ده، چي هیڅوک ترینه انکار نشي کولی، بلکه علي او حسین او اهل بیت رضي الله عنهم ټول به په سختیو او مشکلاتو کي الله پاک ته فریادونه کول او یواځې د هغه نه به یي مدد غوښتلو، نو هغه خلک څوک چي د دوي د محبت دعوي کوي، پکارده چي د هغوي په لاره خو روان شي.

دي باره کې ځیني خلک د ډیر زیات ناپوهۍ او جهالت ښکار شوي دي، تردي چي یو کس په مسجد حرام کي د بیت الله خواته ناست وو، غوښتل یي چي پاڅیږي نو(یاعلي) یي وویل، ځیني علماو دده داخبره واوریده، ورته یي وویل: که ته چیرته د یو چا په کور کي میلمه یې، او په کور کي یو شي ته ستا حاجت پیښ شي نو ایا ته به د ګاونډی نه دغه حاجت غواړي او که نه ددي کور واله نه به حاجت غواړې، نو هغه

ومنله چي زه به د کور واله نه دغه حاجت غوارم په حق يي اعتراف وکړ ځکه چي ده ددي حق نه انکار نشو کولی، د الله پاک ارشاد دی:

﴿ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ يَدۡعُونَ يَبۡتَغُونَ إِلَىٰ رَبِّهِمُ ٱلۡوَسِيلَةَ أَيُّهُمۡ أَقۡرَبُ وَيَرۡجُونَ رَحۡمَتَهُۥ وَيَخَافُونَ عَذَابَهُۥٓۚ إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ كَانَ مَحۡذُورٗا ﴾ [الإسراء: ٥٧]

**دغه خلق چې دوی يې بلي، هغه خلق دي چې خپل رب ته وسيله لټوي چې په دوی کې کوم يو زيات قريب دی، او د هغه د رحمت اميد لري او د هغه له عذابه وېرېږي، بېشکه ستا د رب عذاب له همېشه داسې دی چې وېره ترې وکړی شي.**

يوبل مثال بيان وم چي دټولو خلکو فکر ورباندي رسيږي، يو سړی دی چي الله پاک ورته ډير مالونه ورکړي دي، او دهغه بچي هم شته، دی خپلو بچو ته وايي: چي هرکله ستاسو هر شي خوراک، جامي، لباس، وغيره پکار وو، پس ماته د هغي خبر راکوي زه به ستاسو هر حاجت پوره کوم، خو ددي سړی دابچي ددي خپل پلار نه هيڅ شی نه غواړي بلکه دګاونډي نه دخپلو حاجتونو سؤالونه کوي، نو ايا ددوي داکار عقل مني، يا د عقل سره موافق دی؟

نه بلکه دا کار د عقل سره هيڅ مناسبت نه خوري، د مخلوق باره کي داکار دعقل منافي دی، نو دخالق باره کي مو څه خيال دی، چي هغه په کمال او غنا کي ډير وچت مثالونه لري؟

نو بنده بايد دخپلو حاجتونو او مصيبتونو په وخت خپل الله ته متوجه شي ځکه چي هغه دده رب دی، دده خالق دی، ددي مالک دی.

بیشکه ځیني خلک خپل حاجتونه د پیغمبرانو نه غواړي او هغوي ته فریاد کوي، او په دي باندي دلیل د پیغمبرانو په معجزو سره نیسئ !

چي موسی علیه السلام یو کاڼی په همسا باندي ووهه او دهغي نه د ابو چینه راووتله همدغه رنګ عیسی علیه السلام به مړي راژوندي کول، او د پیدایشي ړوند علاج به یي کولو، او دبرګي مرض علاج به یي هم کولو.

زه ددي په جواب کی وایم:

❁ لمړی: خو دا معجزات دالله پاک د طرفه دي په دي کي دپیغمبرانو هیڅ اختیار نشته، د الله پاک ارشاد دی:

﴿وَرَسُولًا إِلَىٰ بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ أَنِّي قَدۡ جِئۡتُكُم بِـَٔايَةٖ مِّن رَّبِّكُمۡ أَنِّيٓ أَخۡلُقُ لَكُم مِّنَ ٱلطِّينِ كَهَيۡـَٔةِ ٱلطَّيۡرِ فَأَنفُخُ فِيهِ فَيَكُونُ طَيۡرَۢا بِإِذۡنِ ٱللَّهِۖ وَأُبۡرِئُ ٱلۡأَكۡمَهَ وَٱلۡأَبۡرَصَ وَأُحۡيِ ٱلۡمَوۡتَىٰ بِإِذۡنِ ٱللَّهِ﴾

[آل عمران: ٤٩].

**او بني اسرائیلو ته به رسول وي (چې ورته به وايي:) بېشکه زه چې یم، یقینا ما تاسو ته ستاسو د رب له طرفه نه لویه نښه راوړې ده، چې یقینا زه تاسو ته له خټې نه د مرغۍ د شکل په شان (یو شی) جوړوم، بیا په دې (شکل) کې پوکی کوم، نو هغه به د الله په حکم سره الوتونکې مرغۍ شي، او زه مورزادي ړوند او د برګي مرض والا روغوم او مړي ژوندي کوم د الله په حکم سره، او تاسو خبروم په هغه څه چې تاسو يې خورئ او په**

**هغه څه چې تاسو يې په خپلو کورونو کې ذخیره کوئ، بېشکه تاسو لپاره په دې کې خامخا لویه نښه ده که چېرې تاسو ایمان راوړونکي یئ.**

باید دهغه ذات نه حاجتونه وغوښتل شي، کوم ذات چې دوي (پیغمبرانو) ته د ا معجزات ورکړي دي.

- دویم: دوي (پیغمبرانو) دحاجتونو په وخت الله پاک ته فریادونه کړي دي، لکه څنګه چې داخبره مخکې بیان شوه، نو پکار ده چې دوي د پیغمبرانو په لاره روان شي.
- دریم: مخکې ډېر واضحه دلیلونه بیان شول، چې غیر الله ته فریادونه کول او د هغوي نه حاجتونه غوښتل، ناروا دي، بلکه هغه کارونه چې د مخلوق په طاقت کې هم وي پکار ده چې لمړی د الله پاک وغوښتل شي.

دابو جعفر محمد الباقر باره کې راغلي دي چې هغه به ویل: دهر چا چې مخلوق ته حاجت پیښ شو لمړی دي د الله پاک نه وغواړي[1].



(١) «كتاب المستغيثين بالله» لابن بشكوال: (ص٦٨).



# أتم دليل

الله پاک امر کړی دی ټولو بندګانو ته چي يواځي بايد هغه ته فرياد وکړي او الله پاک غير الله ته د فرياد کولو نه منع فرمايلې ده، پس الله پاک د هغه بنده سره مينه او محبت کوي کوم چي يواځي الله پاک ته فرياد کوي، د هغه نه خپل حاجتونه غواړي، هغه ته رجوع کوي، په خپلو ټولو کارونو کي.

غوښتنه، او بلنه عبادت دي او دالله پاک خوښ دی نو هغه بنده چي الله پاک ته فرياد کوي او هغه رابلي نو په دي سره دا بنده الله پاک ته محبوب او نيږدي کيږي.

ددي دليل حديث قدسي دی نبی کريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي:

**«يَنْزِلُ رَبُّنَا تَبَارَكَ وَتَعَالَى كُلَّ لَيْلَةٍ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا حِينَ يَبْقَى ثُلُثُ اللَّيْلِ الآخِرُ يَقُولُ: مَنْ يَدْعُونِي، فَأَسْتَجِيبَ لَهُ مَنْ يَسْأَلُنِي فَأُعْطِيَهُ، مَنْ يَسْتَغْفِرُنِي فَأَغْفِرَ لَهُ»**[1].

**زمونږ رب الله پاک د شپي په اخرنۍ دريمه برخه کي دي نيږدي**

(١) أخرجه البخاري (١١٥٢)، ومسلم (٧٥٩)، وأبو داود (١٣١٥)، والترمذي (٣٧٩٠-٤٤٨)، والنسائي في الكبير (١٠٤٢٠)، وابن ماجه (١٣٤٤)، من طرق متعددة عن أبي هريرة رضي الله عنه وهو حديث متواتر جاء عن اثني عشر صحابيًا، خرجها بطولها الدارقطني في كتابه «النزول»، وشرح هذا الحديث شيخ الإسلام في رسالة مطولة.

**اسمان ته راکوزیږي، څنګه چې دهغه د شان سره لایق دي، او داسې فرمائي: څوک شته چې زمانه حاجت وغواړي چې زه ورله حاجت پوره کړم، څوک شته چې زما نه څه وغواړي چې زه يې ورله ورکړم، څوک شته چې زما نه بښنه وغواړي چې زه ورته بښنه وکړم.**

د الله پاک دي کرم او سخا ته وګوره چې خپلو بندګانو ته بلنه ورکوي چې زما نه حاجتونه وغواړئ چې زه يې درله پوره کړم، او دا هره شپه، سره ددينه چې الله پاک خپلو بندګانو ته هيڅ احتیاج نلري، نو بنده بايد د الله پاک دا کرم او سخا غنيمت وګڼي او دشپې په اخرنئ برخه کې دخپل رب نه ډيري دعاګاني وغواړئ او هغه ته فريادونه وکړي، زړ ده چې دسيني پراخي، او د زړه سکون، او دايمان زيادت به يې په برخه شي، د الله پاک ارشاد دی:

﴿وَسۡـَٔلُواْ ٱللَّهَ مِن فَضۡلِهِۦٓۚ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيمٗا﴾ [النساء: ٣٢]

**او له الله نه د هغه د فضل سوال کوئ، بېشکه الله په هر شي ښه پوه دی.**

امام مسلم رحمه الله په خپل صحيح کې د أبو ذر رضي الله عنه (٢٦٦٠) حديث نقل کړی دی حديث قدسي دی نبي کريم صلى الله عليه فرمائي: چې الله پاک فرمايلي دي:

**«يَا عِبَادِي إِنِّي حَرَّمْتُ الظُّلْمَ عَلَى نَفْسِي، وَجَعَلْتُهُ بَيْنَكُمْ مُحَرَّمًا، فَلَا تَظَالَمُوا، يَا عِبَادِي كُلُّكُمْ ضَالٌّ إِلَّا مَنْ هَدَيْتُهُ، فَاسْتَهْدُونِي أَهْدِكُمْ، يَا عِبَادِي كُلُّكُمْ جَائِعٌ، إِلَّا مَنْ أَطْعَمْتُهُ، فَاسْتَطْعِمُونِي أُطْعِمْكُمْ، يَا عِبَادِي كُلُّكُمْ عَارٍ، إِلَّا مَنْ كَسَوْتُهُ، فَاسْتَكْسُونِي أَكْسُكُمْ...».**

**اى زما بندګانو ما په خپل ځان باندي ظلم حرام کړى دى او ستاسو په مينځ کي مي هم حرام ګرځولى دى، نو تاسو خپل مينځ کي يو بل باندي ظلم مه کوئ، اى زما بندګانو تاسو ټول بي لاره ياست مګر هغه چي زه ورته لار وښايم، پس تاسو زمانه د هدايت غوښتنه وکړي زه به درته هدايت وکړم، اى زما بندګانو تاسو ټول وږي ياست مګر هغه څوک چي زه ورته خوراک ورکړم، پس تاسو تاسو زما نه خوراک وغواړئ چي زه درته خوراک درکړم، اى زما بندګانو تاسو ټول لوڅ ياست مګر هغه چي زه ورته لباس او جامي ورکړم، پس تاسو زما نه لباس او جامي وغواړي، زه به لباس او جامي درکړم ......)**

سعيد (د حديث) راوي وائي چي کله به دا حديث ادريس خولاني بيانولو نو پړمخ به ګذار شو!

دأبو هريره رضي الله عنه نه روايت دى چي نبي كريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي:

**«إِنَّهُ مَنْ لَمْ يَسْأَلِ اللَّهَ يَغْضَبْ عَلَيْهِ»**(١).

---

(١) امام ترمذي (٣٦٥٧)، وابن ماجة (٣٨٥٣) بلفظ «يدع»، وأحمد (٩٧٠١)، والحاكم (١٨٢٩)، وابن أبي شيبة (٢٩١٦٠)، والبخاري في «الأدب المفرد» (٣٤٥)، والبزار (٩٤٢٥)، وأبو يعلى (٦٦٥٥) والطبراني في «الأوسط» (٢٤٣١)، وابن الأعرابي (١٨٠١) والعسكري في «مسند أبي هريرة» (٧١)، وابن أبي خيثمة في «التاريخ» (٣٠٠٣ – القسم الثاني)، وغيره ددي حديث تخريج کړى دى ټولو دابو مليح مدني هغه د ابو صالح خوزي هغه د ابو هريره رضي لله عنه روايت کوي دا حديث ضعيف دى او ددي دضعف وجي دادي:
أبو صالح خوزي ددي نوم معلوم نه دى لكه ابو زرعه رازي دا ويلي دي، ابن معين وائي: دا راوي ضعيف دى، [«الكامل» لابن عدي (٧٤٨/١٠)].
بو زرعه وايي لا بأس به. [«الجرح والتعديل»: (٣٩٣/٩)].
ابن ماجه وائي: چي ما د ابو زرعه نه د ابو صالح باره کي پوښتنه وکړه هغه وويل دى همغه دى فارسي چي ورته ويلى شي، دا خوزي دى خو نوم يي ماته نه دى معلوم.

# بیشکه څوک چي د الله پاک نه سؤال نه کوي الله پا ک ورباندي

ابو بکر بزار (٢٤٨/١٦): وائي: دیته خوزي ځکه وائي: چي دی به مکي ته راتللو او په شعب الخوز علاقه کي به میلمه وو، او ده یواځي د ابو هریره روایت کړی دی او ما یواځي دده دوه حدیثونه ولیدل یو دا حدیث او دویم په معجم الأوسط کي.

(٤٩/٨): «**مَنْ رَأَى مِنْ أَخِيهِ رِبْقَةً فِي دِينِهِ فَسَتَرَهُ عَلَيْهَا، كَانَتْ لَهُ حَسَنَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ**».

الطبراني په «الأوسط» (٩٧٣٦)، او أبي الشيخ په «التنبيه والتوبيخ»: (١٢٤) کي یو بل ته نیږدي الفاظو سره روایت کړی دی د عبدالله بن نافع عن أبي المليح عن أبي صالح عن أبي هريرة. نه.

زه وایم چي ددي دپاره شاهد شته امام مسلم په خپل صحیح کي (٢٦٧٣) د سهيل عن ابيه عن ابي هريره رضي الله عنهم مرفوع حديث.

«**لَا يَسْتُرُ عَبْدٌ عَبْدًا فِي الدُّنْيَا، إِلَّا سَتَرَهُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ**»، يسهيل نه دا حديث يواځي أبو المليح الخوزي الفارسي المدني الخراط، روایت کړی دی ، دده نوم: صبیح لکه ابن معين او دارمي دا خبره کړي ده په [«تاريخ الدوري»: (٧٢٦/٢)، «التاريخ الكبير»: (٣٦٦/٢) - (٣١٨/٤)]، او چا ویلي دي چي دده نوم حمید، دی لکه ترمذی داخبره کړي ده «تحفة الأشراف»- (١٥٤٤١) الحاكم (٨/٣).

وګوره «تصحيفات المحدثين» (٧٨٧)، ابن معين ده ته ثقه ویلي دی لکه په «سؤالات الدوري»: او أبو حاتم: شيخ. [«الجرح والتعديل»: (٤٥١/٤)]. کي.

ابن حبان په [«الثقات»: (٤٧٥/٦)]، ذکر کړی دی او بشر الدولابي په [«الكنى»: (١٠٦١)] کي ددي توثيق کړی دی الدولابیوائي: يوأبو المليح دی ددي نوم صبيح دی دا ثقه دی دویم: أبو المليح دده نوم حميد. دی اودا خبره امام بخاري (٣٥٥/٢) او مسلم في «الكنى»، او ابن أبي حاتم، د خپل پلار نه هم نقل کړی ده (٣٣٣/٣) اوابن حبان (١٩٢/٦) دا ښکاري چي ده دا خبره د مسلم نه اخستي ده ددي تفصيل په کلام د حاکم کي راځي په دي دواړو باندي.

دا تفرد په اوله طبقه د حديث کي واقع شوی دی ځکه چي د ابو صالح او ابو المليح متابعت نه دی شوی او دوي په همدي حديث سره مشهور شوي دي، ځکه چي محدثين دوي يواځي په دي حديث سره پيژني لکه ابن معين دا خبره کړی ده، صاحب حديث «من لم يسأل الله» ابن معين.

امام ترمذي وايي مونږ داحديث يواځي دهمدي سند نه پيژنو امام طبراني وائي: دا حديث د ابو صالح نه يواځي ابو المليح روايت کړی دی.

امام دارقطني وائي په دي حديث سره ابو المليح تفرد کړی دی [کما في «أطراف الغرائب والأفراد»: (٥٥٥٨)]: په دي مسائلو کي داسي حديث معتبر وي.

امام حاکم وائي: دا حديث صحيح دی د سند په لحاظ سره ځکه چي ابو صالح خوزي او ابو المليح الفارسي مجروح نه دي او ددوي شمير په مجهو لينو کي د قلت روايت دوجي نه شوي دی.

غوسه کیږي.

د قران او سنت نصوص د پورتني حدیث د معنا تایید کوي، پس هغه څوک چې د الله پاک نه خپل هیڅ حاجتونه نه غواړي بیشکه الله پاک په هغه باندي غوسه کیږي، ځکه هغه څوک چې د الله پاک نه هیڅ سؤال او غوښتنه نه کوي حقیقت کې دی د الله پاک ربوبیت او الوهیت نه مني.

ځیني دعاګاني او غوښتني داسي دي چې دهغې غوښتل د الله پاک نه واجب دي، لکه د الله پاک نه د هدایت سؤال کول، د الله پاک ارشاد دی:

﴿ ٱهۡدِنَا ٱلصِّرَٰطَ ٱلۡمُسۡتَقِيمَ ﴾ [الفاتحة: ٦]

**ته مونږ ته سمه (نېغه) لاره وښایه.**

همدغه شان د الله پاک نه د مغفرت دعا کول، لکه د دوو سجدو په مینځ کې دعا غوښتل وغیره، یو شاعر دامعنا په شعر کې ویلې ده:

الـرَّبُّ يَغْضَـبُ إِنْ تَرَكْـتَ سُـؤَالَهُ     وَبَنِـيّ آدَمَ حِـينَ يُسْـأَلُ يَغْضَـبُ

دالله پاک نه چې نه غواړي غوسه کیږي     او دبني ادم نه چې غواړي غوســه کیږي





# نهم دلیل:

د شرعي نصوصو سربیره انساني فطرت هم په دي باندي دلالت کوي چي د غیر الله نه هغه حاجتونه غوښتل نارواه دي کوم چي د مخلوق په اختیار کي نشته، ځکه چي الله پاک بندګان په داسي سلیم فطرت باندي پیدا کړي دي چي هغوي د خپل فطرت سره سم په سختیو او تکلیفونو کي یواځي الله پاک ته روجوع کوي، تر دي چي کافران هم په سختو حالاتو کي یواځي الله پاک ته رجوع کوي، د الله پاک ارشاد دی:

﴿ هُوَ ٱلَّذِي يُسَيِّرُكُمۡ فِي ٱلۡبَرِّ وَٱلۡبَحۡرِۖ حَتَّىٰٓ إِذَا كُنتُمۡ فِي ٱلۡفُلۡكِ وَجَرَيۡنَ بِهِم بِرِيحٖ طَيِّبَةٖ وَفَرِحُواْ بِهَا جَآءَتۡهَا رِيحٌ عَاصِفٞ وَجَآءَهُمُ ٱلۡمَوۡجُ مِن كُلِّ مَكَانٖ وَظَنُّوٓاْ أَنَّهُمۡ أُحِيطَ بِهِمۡ دَعَوُاْ ٱللَّهَ مُخۡلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ لَئِنۡ أَنجَيۡتَنَا مِنۡ هَٰذِهِۦ لَنَكُونَنَّ مِنَ ٱلشَّٰكِرِينَ ﴾ [یونس: ٢٢]

**هم هغه دی چې تاسوپه وچه او بحر کې ګرځوي، تر دې چې کله تاسوپه کښتیوکې (سواره) شئ، او دا (کښتۍ) له دوی سره په ښې (موافقې) هوا سره رواني شي او په دې سره دوی خوشحاله شي ( نو) په دې (کښتیو) باندې سخت تېز باد راشي او په دې (خلقو) باندې له هر ځایه چپې راشي او دوی یقین وکړی چې بېشکه دوی ګېرکړی شول (بیا) دوی الله بلې، په داسې حال کې چې خاص هغه لره دین (عبادت) خالص کونکي وي ( او وايي) که چېرې تا مونږ ته له دې (مصیبت) نه خلاصی راکړې، نو مونږ به خامخا د شکر کونکو نه شو.**

یو بل مقام کي الله پاک فرمایلي دي:

﴿وَإِذَا مَسَّكُمُ ٱلضُّرُّ فِي ٱلْبَحْرِ ضَلَّ مَن تَدْعُونَ إِلَّآ إِيَّاهُ فَلَمَّا نَجَّىٰكُمْ إِلَى ٱلْبَرِّ أَعْرَضْتُمْ وَكَانَ ٱلْإِنسَٰنُ كَفُورًا﴾ [الإسراء: ٦٧]

**او کله چې تاسو ته په سمندر کې سختي درورسېږي (، نو) هغه څوك (ستاسو له فکره) ورك شي چې تاسو يې بلئ مګر یواځې هغه (الله بلئ)، نو کله چې تاسو وچې ته بچ کړي (، نو) تاسو مخ اړوئ (له توحیده) او انسان دی ډېر ناشکره.**

بلکه حیوانات هم په همدي فطرت پیداشوي دي چي ټول خپل خالق ته توجه کوي لکه د سلیمان علیه السلام د هدهد مرغه باره الله پاک فرمایلي دي:

﴿فَمَكَثَ غَيْرَ بَعِيدٍ فَقَالَ أَحَطتُ بِمَا لَمْ تُحِطْ بِهِۦ وَجِئْتُكَ مِن سَبَإٍۭ بِنَبَإٍ يَقِينٍ ﴿٢٢﴾ إِنِّي وَجَدتُّ ٱمْرَأَةً تَمْلِكُهُمْ وَأُوتِيَتْ مِن كُلِّ شَيْءٍ وَلَهَا عَرْشٌ عَظِيمٌ ﴿٢٣﴾ وَجَدتُّهَا وَقَوْمَهَا يَسْجُدُونَ لِلشَّمْسِ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَزَيَّنَ لَهُمُ ٱلشَّيْطَٰنُ أَعْمَٰلَهُمْ فَصَدَّهُمْ عَنِ ٱلسَّبِيلِ فَهُمْ لَا يَهْتَدُونَ﴾ [النمل: ٢٢-٢٤]

**نو هغه (هدهد) ایسار شو، خو ډېر نه، (او ژر راغی) نو ویې ویل: ما هغه خبره (په علم کې) ګېره کړې ده چې تا هغه ګېره کړې نه ده او زه تا ته له سبا (ښار) نه په یقیني خبر سره راغلی یم.**

وګوره یو مرغه څنګه انکار کوي دمشرکینو د عمل نه کله چي هغوي غیرالله ته متوجه شوي وو، ځکه چي دا هغه فطرت دی په کوم چي الله پاک خپل ټول مخلوق پیدا کړي دی انسانان، پیریان، ګویا، او چارړا ټول مخلوق الله پاک په دي فطرت باندي پیدا کړی دی.



# لسم دليل:

انسان ته په خپل عقل انساني سره دا خبره معلومه ده (لکه ځنګه چې مخکې ددې وضاحت شوی دی) هغه مخلوق چې ځينې خلک ورته دالله نه غير رامدد شه وائي: دوي هم مخلوق دي، نو ځنګه دوي هغه مخلوق ته فريادونه کوي اودهغوي نه خپل حاجتونه غواړي، دهغوي نه درزق پراخي دمرضونونه شفا وغيره غواړي،او هغوي ددوي په شان کمزوری مخلوق دی؟!

د الله پاک ارشاد دی:

﴿قُلْ إِنَّمَآ أَنَا۠ بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوحَىٰٓ إِلَىَّ أَنَّمَآ إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَٰحِدٌ ۖ فَمَن كَانَ يَرْجُوا۟ لِقَآءَ رَبِّهِۦ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَٰلِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِۦٓ أَحَدًۢا﴾ [الكهف: ١١٠]

**ته (دوی ته) ووايه: بېشکه همدا خبره ده چې زه يواځې ستاسوپه شان بشر يم، ما ته وحي کولی شي چې بېشکه ستاسو معبود يواځې يو معبود دی، نوهغه څوك چې د خپل رب د ملاقات امېد لري، نوهغه دې نيك عمل وکړي او د خپل رب په عبادت کې دې هيڅوك نه شريکوي.**

یو بل مقام کې الله پاک فرمايلي :

﴿قَالَتْ لَهُمْ رُسُلُهُمْ إِن نَّحْنُ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يَمُنُّ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦ ۖ وَمَا كَانَ لَنَآ أَن نَّأْتِيَكُم بِسُلْطَٰنٍ إِلَّا بِإِذْنِ ٱللَّهِ ۚ وَعَلَى ٱللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ ٱلْمُؤْمِنُونَ﴾ [إبراهيم: ١١]

**دوی ته خپلورسولانووویل: مونږ نه یومګرستاسوپه شان بشر، او لېکن الله په خپلو بنده ګانوکې چې په چاوغواړي احسان کوي او مونږ ته له سره اختیار نشته چې تاسو ته کوم دلیل (معجزه) راوړومګر د الله په حکم سره او لازم ده چې خاص په الله باندې مومنان توکل وکړي.**

الله پاک فرمایلي:

﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ تَدۡعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ عِبَادٌ أَمۡثَالُكُمۡۖ فَٱدۡعُوهُمۡ فَلۡيَسۡتَجِيبُواْ لَكُمۡ إِن كُنتُمۡ صَٰدِقِينَ ﴾[الأعراف: ١٩٤]

**بېشکه هغه خلق چې تاسو يې له الله نه غير بلئ، (هغوی) ستاسو په شان بنده ګان دي، نو هغوی راوبلئ، پس هغوی دې ستاسو بلنه قبوله کړي، که چېرې تاسو رښتيني يئ.**

تردي چي هغه کارونه کوم چي د مخلوق په طاقت کې او کولی شي چي هغه ترسره کړي هغه کارونه هم باید یواځي دالله پاک نه وغوښتل شي، او مخلوق ته بیخي توجه ونشي.

مونږ وینو ځیني خلک چي هغوي ته مرض ورسیږي ګرځي په نورو خلکو او ورته وائي په ما دم واچوه!

باید ده چي دوي دټولو نه اول خپله په خپل ځان دم واچوي، ځکه هر یو مسلمان ته سورت فاتحه، ایت کرسي، سورت الکافرون، سورت الناس وغیره زده وي پکار ده چي خپله خپل ځانونه دم کړي.

ځکه چي کله څوک په خپل ځان خپله دم اچوي، نو په ډیر اهتمام






سره سورتونه وائي، او په زړه سره هم الله پاک ته ډیر متوجه وي، او په داسي دم کي الله پاک ډیر اثر اچوي، ډیر څله خلک خپل ځان په خپله دم کړی او الله پاک ورته شفا ورپه برخه کړي!

همدغه شان ځیني خلک محتاجه وي او د نوکري په تلاش کي کوشش کوي او واسطي لټوي کله دیو سره خبره کوي او کله د بل سره خبره کوي تر څو نوکري ورته پیدا شي، او ددي دپاره خپل رب ته فریاد نه کوي چي نوکري ورته پیدا شي.

دلته یوه قصه راته رایاده شوه چي ما اوریدلي وه د اذاعة القران الکریم راډیو نه هغه داسي قصه وه: یو کس د نوکري په تلاش کې وو، یو ځاي ته ورغی چي نوکري واخلي لیکن هغه خلکو ورته هیڅ توجه ورنه کړه، نو ډیر غمژن شو، دیو عالم خواته ورغی ددي دپاره چي دا عالم یي سفارش وکړي، هغه عالم ورته وویل: ته باید یواځې الله پاک ته فریاد وکړي ده دهغه عالم په خبره عمل وکړ، دشپي په اخرني برخه کي یي تهجد مونځ وکړ، او دالله پاک نه یي دخپل حاجت دعا وغوښتله، او بیا همغه ځاي ته ورغی په کوم ځاي کي چي دنوکرۍ کوشش کاوو، نو نوکري ورته ملاو شوه، تردي چي هغه مسؤول کس ورته وویل چي ته چیرته وي، حالانکه دی مخکي دهمغي خواته ورغلی وو.

بلکه ځیني خلک به ته ووینې چي د خپل ځان دپاره دعا هم د بل چانه طلب کوي او وائي: چي ماته دعا وکړه، حالانکه الله پاک فرمایلي دي:

﴿وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ﴾ [غافر: ٦٠]

**او ستاسو رب فرمايي: تاسو ما وبلئ چې زه ستاسو دعا قبوله کړم.**

یو بل مقام کې الله پاک فرمایلي:

﴿ وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌ ۖ أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ ۖ فَلْيَسْتَجِيبُوا لِي وَلْيُؤْمِنُوا بِي لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُونَ ﴾ [البقرة: ۱۸۶]

**او کله چې زما په باره کې له تا نه زما بنده ګان تپوس وکړي، نو یقینا زه قریب یم، د دعا کوونکي دعا قبلوم کله چې له ما نه دعا غواړي، پس دوی دې زما حکم ومني، او په ما دې ایمان راوړي، د دې لپاره چې دوی سمه لار ومومي.**

دې باره کې د سلفو ځیني د عبرت قصې مشهورې دي، د هغه قصو دجملې څخه یوه قصه د أصبغ بن زید الوراق رحمه الله ده: دی فرمائي: زه د خپلو بچو سره درې ورځې په نهره وم ځکه چې هیڅ خوراک مو نه وو کړی، په دې کې زما وړه لور ځما خواته راغله او راته یې وویل: پلارجانه مونږ ډیر د ولږې په حالت کې یو!

هغه مې په ځاي پریښوده او د اوداسه دپاره پاڅیدم اودس مې وکړ، او دوه رکعته مونځ مې وکړ، او دعاجزۍ لاسونه مې د خپل رب په دربار کې د دعا دپاره پورته کړل، خو ددعا الفاظ رانه هیر شو، نو دخپل رب نه مې وغوښتل: ای زما ربه که د رزق نه دې محرومه کړی یم نو د دعا نه مې مه محرومه وه!

نو په زړه کې راته دا دعا رایاده شوه: ای پروردګاره ټول اوازونه تاته محتاجه او عاجزې کوي، تصور او فکرونه ستا باره کې ډوب شوي دي،

او ستاد مدد نه بغير تړول کارونه ناشوني دي، هرشي په هرڅه کې تاته پناه دروړي، هر مؤمن بنده په تاباندي ځان سپاري، ته اوچت ذات يې په خپل عزت کې، ډير ښائسته يې په خپل جمال کې، ته دلوي شان واله يې، د ډير قدرت خاوند يې، اى هغه ذاته چي په اوچتوالي کې نيرډدي يې، او په نيرډدي والي کې اوچت يې، او په بادشاهۍ کې قوي يې، پروردګاره په محمد صلى الله عليه وسلم او دهغه په ال باندي رحمتونه راوليږه، اوپه ما باندي په خپل رحمت سره ستا دخوانه درزق دروازه راکلاو کړه، داسي چي په دنيا او اخرت کې په ما باندي څه بوچ نه وي، بيشکه ته ډير رحم کونکې يې، ددي نه روستو کور ته لاړم، ګورم چي مشره لور مي راپاڅيده او ماته وائي: اى پلار جانه همدا شيبه زما تره راغى او دا بټوه د روپو يي راکړه، او راته يي وويل: څما په ورو باندي سلام ووائي، او دا ورته هم ووائي، چي کله هم ستا څه حاجت وو، په همدغه الفاظو دعا غواړه حاجت به دي پوره کيږي!

اصبغ بن زيد رحمه الله قسم سره وائي: چې زما بيخي ورور نه و، او نه مي دغه کس وپيژنده، ليکن الله پاک په هر څه باندي قدرت لري (١).

زه وايم: دعبرت خبره داده: چي دي سړي دخپل حاجت دپاره خپل رب ته توجه وکړه او هغه ته يي د عاجزۍ لاسونه پورته کړل، نو الله پاک ډير زر دده حاجت پوره کړ.

بله يوه قصه ده: چي محمد بن حزم ذکر کړې ده، او دا دهغه د پلار قصه ده، د هغه پلار په اندلس کې د يو بادشاه سره وزير وو، منصور بن

(١) «كتاب المستغيثين»: (٦٣) لابن بشكوال.

أبي عامر نومیده، ابن حزم وائي: ماته هشام بن محمد د خپل پلار نه خبر راکړی دی چي هغه د منصور ابو عامر محمد بن أبي عامر سره په یو عام مجلس کي ناست وو، چي هغه ته یو خط راوړل شو، د یوې مور د خوانه چي د هغې زوی بندي وو، او هغې ددي منصور بادشاه نه د رحم او نرمي خواست کړی وو، خو دا بادشاه په دي بندي باندي ډیر په قهر او غوسه وو، ځکه چي ده یو داسي جرم کړی وو، چي بادشاه ته دمنلو وړ نه وو، نو بادشاه چي کله دا خط ولوست ډیر زیات په قهر او غوسه شو، او داسي وویل چي دي ښځي راته دا خپل ځوی رایاد کړ، وس به یي خامخا په دار کوم، قلم یي راواخست، امضا یي وکړه او غوښتل یي چي ولیکي (یصلب) یعني په دار یي کړي، خو ددي په ځای یي لیکلي وو، (یطلق) یعني ازاد یي کړې، او داخط یي دي وزیر ته ورکړ، وزیر دا خط راوخست، او د بادشاه د امر سره سم سرلښکر ته یي ولیکل چي دا بندي ازاد کړي، بادشاه چي وکتل ورته وائي: داڅه لیکې؟

هغه وزیر ورته وائي: چي دهغه بندي باره کي ستا د امر سره سم د ازادیدو امر لیکم بادشاه په غوسه شو، او وزیر ته وائي: تاته دا امر چا کړی دی؟

وزیر ورته خط ورکړ چي تا لیکي دي چي دغه بندي ازاد کړې، بادشاه چي خط ولید نو داسي وویل: چي زه په لیکلو کې خطا شوي یم، زه خو د هغه په دار کول غواړم، بیا یي خط راواخست غوښتل یي چي ولیکي، (یصلب) یعني په دار یي وځړوې، خو داسي یي ولیکل چي (یطلق) یعني ازاد یي کړې، او خط یي وزیر ته ورکړ، ددي دپاره چي دده حکم نافذ کړي، وزیر چي خط راواخست چي یي وکتل بادشاه لیکلي وو، چي

دا بندي ازاد کړې، نو وزیر د بادشاه د امر سره سم د بندي د ازادولو دپاره خط لیکلو، منصور بادشاه ورته وکتل، ورته يې وویل: څه لیکئ؟

وزیر ورته وویل: چې د بندي دازادولو دپاره خط لیکم، بادشاه داول ځل په پرتله زیات په غوسه شو، وزیر ته يې وویل تاته چا دا حکم کړی دی؟

وزیر ورته خط ورکړ چې تا لیکي دي چې دغه بندي ازاد کړې، بادشاه چې خط ولید بیا يې وغوښتل چې دبندي په دار ځړولودپاره (یصلب) په دارېي وځړوې، ولیکي خو بیا يې ولیکل چې (یطلق) ازاد يې کړي، وزیر بیا د بادشاه د حکم سره سم د بندي د ازادولو دپاره ولیکل، بادشاه ورته وویل څه دي ولیکل وزیر وویل: ستا د امر سره سم مي د دي بندي ازادولو دپاره ولیکل، ځکه چې دا دریم ځل دی چې تاسو ددي بندي باره کې د ازادولو حکم کوئ، بادشاه خپل دا لیکل ولید حیران شو، او داسي وویل: چې هو دابه ازادیږي اګر که ما دده ازادول نه غوښتل، ځکه چې الله پاک دچا ازادول وغواړي نو زه هیڅ کله د هغه په مرګ قادر نه یم![1].

نو تاسو په دي قصه باندي غور او فکر وکړې، بادشاه دیو بندي دپاره دري ځل په دار ځړولو حکم کولو لیکن الله پاک ددي بندي ازادولو اراده کړې وه، او بالاخره الله پاک ازاد کړ.

دالله پاک ارشاد دی:

﴿أَنَّ ٱللَّهَ يَحُولُ بَيۡنَ ٱلۡمَرۡءِ وَقَلۡبِهِۦ﴾ [الأنفال: ٢٤]

---

(١) «الإمام ابن حزم»: (٨٠) للظاهري.

**ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو د الله او د رسول خبره منئ کله چې دی تاسو د هغه کار لپاره راوبلي چې تاسو ته ژوند درکوي، او پوه شئ چې بېشکه الله د انسان او د هغه د زړه په مینځ کې حایل (رکاوټ) کیږي او دا چې بېشکه خاص د هغه په طرف به تاسو ورجمع کولی شئ.**

ددي بندي ازادیدلو راز دهغه دمور دعا وه چي دخپل رب نه یي د خپل ځوي د ازادیدلو دپاره د دعا لاسونه پورته کړي وو.

شیخ الاسلام ابن تیمیة رحمه الله ویلي دي: په بنده باندي واجب ده چي خپل ټول حاجتونو د خپل رب نه وغواړي، او په خپل رب باندي توکل وکړي، او مخلوق ته توجه ونه کړي، خو د ضرورت په وخت مخلوق ته توجه کول جواز لري، خو چي دضرورت په وخت هم مخلوق ته توجه ونه کړی شي دا غوره ده.

د الله پاک ارشاد دی:

﴿فَإِذَا فَرَغْتَ فَٱنصَبْ ۝٧ وَإِلَىٰ رَبِّكَ فَٱرْغَب﴾ [الشرح: ٧-٨]

**نو کله چې ته فارغ شې، نو (په عبادت کې) ځان ستړی کوه، او خاص خپل رب ته رغبت (او زاري) کوه**

یعني الله پاک ته رجوع وکړه نه غیر ته .



# څلورم پیغام

## یو الله ته درجوع وجوبي دلیلونه

په دې رساله کې دا حقیقت بیان شوی چې بنده په هر حالت کې خپل رب ته محتاجه دی او پکار ده چې یوازې خپل رب ته رجوع وکړي او خپل ټول حاجتونه همده ته وروړاندې کړي او یوازې په خپل رب توکل وکړي.





IslamHouse.com



